۱۳۴۷
(۸)



د کندهار مجله د عقرب
دمیاشتی د شپاړسمی نیټی
په مناسبت چې د معظم
او لوالشان همایونی اعلیحضرت
د اړکمرغه تخت کښېناستو
د پنځه دېرشمی کالیزی سره
مصادفه ده خپل د زړه
له کومی مبارکی شاهانه
حضور او د افغان نجیب
ملت ته وړاندی کوی او د
لوی خدای[ج] له درباره
څخه د شهریاری ذات تر
هما پایه سیوری لاندی
د افغان ولس د لا زیات
وړاندی تګ هیله کوی.

# د مینې رویبار

اې ښکلې او ښایستې کوترې ! هره ورځ دا روح سوځونکې او زړه خوږوونکې نارې وهې . آیا زړه دې غواړي چې دا خپل ښایسته وزرونه زما د پاکې او سپېڅلې مینې په خدمت کې را ته وړاندې کړې .

آزما ګرانې او ښې مخې محبوبې ! وګوره چې ته څونه ددې کوترې څخه چې زما د مینې او محبت نه ډک لیک تا ته دروړی لیږی یې هېر ولاى .

آه ، بېله دې چې ستا د دوو تورو او ملالو سترګو په یاد په وینو وژاړم . زما د سوې او د غم څخه ډک زړه ته بل ځای او امید نه دی پاته سوی ، نو ځکه ته زما له یاده نه وزې او زه دی نه سم

نو اې ښایستې کوترې هله ژر ولاړه سه او زما ددې سوې او مکوټ زړه ملګرې سه او پام کوه چې ستا دا تازه ګۍ او سور- بخونې پښې د درختو له ښاخو او یا له هغه جګو ، جګو د ډوالو څخه و نه ښښلې ژر دې چې زړه بهمې د مینې له تاوه څخه و دریږي او نابود به سم .

که دې زړه دې چې دا د مینې په اور سوې او لوپه مین دې خوښ او خوشحاله کړې زما د محبوبې و ماڼۍ ته ورسه او دا د زړه په وینو لیکل سوی پاڼه دې ته ورکړه او زما له خوا ددې هغه سرې او نازکې شونډې په ډېر ادب او احترام سره مچ کړه وروسته هغه ښا نه چې زما د ژوند ملګرې د زړه ټوټې یا په بله ژبه د انس فرښتې د خپل نامراد او ناکامه مین د پاره درکړې ده راوړه او راسه ، زما پر دې د مینې او محبت نه ډک سینه باندې کېښېنه او آرام وکړه .

[رېدی]

د بناغلی محمدگل [نوری] ژباړه

# د آریانا د واکدارانو پخوانی سلسله

زرونه کلونه پخوا چې آریائیان له خپل اصل ځای (آریاویجو) څخه د هندوکش و شمالی سیمو ته ولېږېدل نو په ډېر لنډ وخت کې دوی د یوه لوی دولت په جوړېدلو بانډی بریالی شول .

د اوستا د توضیحاتو سره سم د آریانا لومړنی پله پاچاهان له بلخ څخه پر ۷ نورو هیوادونو باندی آریائیانو حکومت کاوه او دوی د پارادا تا (پیشدادی) په نامه سره یاد ېدل چې ددغه پیشدادی لغوی مفهوم (لومړی پاچاهان) دی د آریانا د سلطنت اساس ددوی په وسیله سره په بخدی (بلخ) کی کېښېوول شو . د ویدی او اوستائی د مأخذ د شهادت له مخې د پارادا تا سلسله او وروسته پیادکیانی (پخوانی آریا) هغه وخت چې آریائیان د باختر لور ته په لېږد ېدلو باندی شروع وکړه، پردوی ټولو باندی ئې حکومت کاوه .

د آریائیانو د لومړنی سلطنت مؤسس رایما (جمشید) بولی داهم باید وویل شی چې د مخه تر دوی یو بله پله حکمرانان وه چې په اغلب گومان سره ملی مشران گڼل کېدل هغه ؤ چې دوی کرار کرار د یو لوی سلطنت د جوړېدلو لپاره زمینه برابره کړه او په حکومت کولو ئې شروع وکړه. او دوی په ترتیب سره یو په بل پسې په لاندنی ډول سره منځ ته راغله .

۱- کیومرث، خلك نسبتاً پخوا ته له مدنی ژوند سره اشنا کړه .

۲- سیامك، د کیومرث زوی چې وروسته له ده د پلار پر ځای کېښېنو ست .

۳- هوشیانما (هوشنگ) چې اوستا دده فداکاری او قربانی یادی کړیدی .

۴- تخمه اوروپا (تهمورشاه) تر هوشنگ وروسته میدان ته راغلی .

یما (جمشید)

یما چې دویدی سرودونه ددی یماراجان ، (یعنی ستر پاچا) او اوستا دی یما بولی او د یما دوره یوه روښانه زمانه او اسلامی دوره ده (جمشید ؤ جم) بللی دی او په حقیقت کی دی لومړی واکدار د د (پارادا تا) د سلسلی دی. چې په باختر کی و سلطنت ته رسیدلی دی نوموړی یو ځینګه کلا په نجدی کی د بلخ په لوی موقعیت کی ودانه کړه . او خلکو ته ئې کرهڼه، حرفه او د اسلحی استعمال و روښودی مخکی تر ده اسلحی له ترگو او ډبری څخه جوړېدلی ولی ده د اسلحی جوړول په پوره توگه سره لکه توره او خنجر رواج کړه د یما د واکمنی په وخت کی وسله اصلاح شوه د پهلوانانو او د عسکری قوی تنظیم شروع شو .

پدغه وخت کی نو آریائیان د شمالی پاتوریانو

ومقابلې ته تيار شول .

ديما د سلطنت په وروستيو وختو کې يو شخص دازهي دهاکا (ضحاك) د لويديځ لورخخه پر باختر باندې حمله وکړه او په موقتي توګه ئې پر هغوى باندې تسلط پيدا کړ هغه ؤ چې وروسته له يوې مودې ترتيونا «فريدون» دوی مغلوب کړه اوديما وسلطنت ته ئې خاتمه ورکړه .

ترتيونا (فريدون)

ترتيونا (فريدون) يود نامی پاچاهانو څخه د پاراداتا د سلسلې دی چې ازهي دهاکا (ضحاك) ئې مغلوب کړ اود لومړني پاچاهانو سلطنت ئې له منځه يوړ .

کرساسپه (ګرشاسپ)

د ترتيونا څخه وروسته کرساسپه وسلطنت ته ورسېده دی شجاع، زورور اوقوی پهلوان ؤ نو له دغه امله د پاراداتا، دسلسلې دقوی پاچاهانو څخه ګڼل کيږی .

د کرساسپه د کارو څخه اکثره دده د قهرمانۍ داستانونه له کابله اوګندهارا څخه بيا دارغنداو تر حوزې اود سيستان ترشاو خوا پورې خپاره او تيت شويدی، دی د«ګرشاسپ نريمان» پنامه هم بلل کيږی، د اوستا د ځينو اشارو څخه څرګنديږی چې ازهي دهاکا (ضحاك) دده په لاس وژل شويدی، دا هم څرګنديږی چې بنايي په مصر کې ترتيونا يو عسکری ستر قهرمان ګڼل کېدی .

په افغانستان کې ډېری جنګی کلاوی دده (ګرشاسپ نريمان) پنامه معروفی دی، چې ددغو کلاوو څخه ديوې کلاخرابه او کنډواله دکابل او باميان د تقاطع په نقطه دضحاك دښار په څنګ کې ديوه غره په بغل کې ليدله کيږی .

✡ ✡ ✡

# د کاوی (کيانی) کورنۍ

دپاراداتا تر کورنۍ وروسته د کاوی يا کيانی پر آريانا باندی د بخدی څخه حکمرانی او فرمانروايی کړېده، ددې سلسلې دباچهانونومونه د کاوی، او کی په کلمو سره شروع کيږی او مؤسس ئې کاوی کوانا (کيقباد) ګڼل شويدی.

✡ ✡ ✡

# کاوی کوانا

(کيقباد)

کاوی کوانا هغه شپون دی چې د اوستا دليکنې سره سم دالبرز په غره کې چې د بلخ په جنوب کې دی دوو عقابانو يو تاج (خول) دده پر سر ايښی دی ، نو ځکه وګړو دی په پاچهی سره انتخاب کې .

دغه پاك نژاده باچا د دخپلې دورې په مهال کې خپل مملکت دشمال د تورياني يرغلو او چپاو څخه وساته اود آريانا دامنيت دپاره ئې ډېر کوښښ اوهاند کړيدی.

✡ ✡ ✡

# کاوی يوسان

(کيکاوس)

تر کاوی کواتا وروسته دغه نوموړی د آريانا و سلطنت ته ورسېدی ، دغه باچا ډېرزړه ور اوزورور باچا ؤ .

ده ډېرجنګ نيت وکړه چې د آريانا حدود د پردو (پرته د آريايي نژاد څخه) پاك کړی، د همدغه مطلب دپاره لومړی د مازندران دځنګلو وخواته ولاړ.

دغه علاقه اوسيمه اوستا دديبا سيمه بلله.

پاته لری

ليکونکى: موريس ميتر لينک

د «ع» ژباړه

# د نړۍ نوى حرکت

په ۱۸۲۷ ميلادى کال کى يو انګليسى پوهاند چى «برون» نوميدى، دې ته متوجه شو چى د اجسامو

ډير کوچنى ذرات د حرکت درلوونکى دى، يو آن هم آرام نه کوى او پرله پسى ښورى.

که د خونى له کولک يا دديوال له سورى څخه يوې تيارې خونى ته د لمر وړانګى ديو ستون په ډول

رالوېدلى وى، موږ په هغه نور کى داسى ذرې وينو چى پرله پسى پورته او کښته کيږى، او دا هم راته معلومه

نه ده چى آيا له دې دايمى پورته کښته کيدلو څخه ئې هدف څه دى؟

دا موضوع په زرهاوو کلو د مخه زموږ نيکه ګانو درک کړې وه ولى هيڅوک نه حاضريدل چى داومنى

چى هغه ذرات په خپله په حرکت کى دى، او داسى خيال به ئې کاوه چى د هوا څپى که څه هم ډيرى آرامى وى دا ذرات په حرکت

راولى.

په ۱۸۲۷م کال کى برون دې ته متوجه شو چى دا حرکت د اوبو په يوه څاڅکى کى هم سته او هغه ذرات چى د اوبو په يوه څاڅکى

کى راټول شوى وى پرله پسى ښورى او حرکت کوى. ښکاره ده چى د ذراتو دا حرکات د هغو الکترونو له حرکت څخه توپير

لرى چى د اتم په منځ کى ښورى او د نيمى پېړۍ راپه دېخوا موږ په پوهيدلى يو.

په نړۍ کى چى څه ذرات شته هغه د هميشه او ابد لپاره په حرکت کى دى، او که د يوه کان په منځ کې پر يو بلوورينه ډېره

د اوبو څاڅکى وويني او دا هم در ته معلومه وى چى د زرهاوو کلو راپه دېخوا نو موړى څاڅکى هيڅ حرکت نه دى کړى بيا هم د هغه ذرات پرله پسى په حرکت کى دى.

دا څاڅکى چى د زرهاوو کلو راپه دېخوا په ښکاره ډول د ډېرى پر بستر آرام بيده دى په خپل داخل کى داسى جنب و جوش

پکښى شروع دى چى زموږ د اجتماعاتو لوى فعاليت حتى د

جګړې د ډګر اړو دوړ هم نه شى پسى رسيدلاى.

دا حرکت نن د خپل کاشف په نامه ياديږى او د «برون حرکت» نوم ورته اېښودل سويدى.

اوس چى دې حرکت ته ګورو بايد اعتراف وکړو چى د نړۍ يو لوى سر هم د غه حرکت دى.

دا حرکت چى په ذراتو او الکترينو کى موجود دى د آسمان خواته لوى ستورى او لوى نظامونه هم له دې

حرکت څخه فارغه نه دى. د ذراتو دا حرکت دومره تېز دى چى کله موږ نفس کاږو او بير ته ساه راکشوو په

ميلياردو ذرات د توپ تر مردک هم په چټکى زموږ سږو ته ننوزى او د نفس په راايستلو بير ته راوزى.

داچى موږ په يوه تاريکه کوټه کى د لمر په رڼا کى کوم ذرات وينو ډېر غټ دى او هر يو ئې د مليونو ذرو له اجتماع څخه جوړ

اود په ٦ مخ کى

د [هاروني] ژباړه

# عجیبه سزا
# او
# عجیب سوغات

داخبره ډېره مشهوره ده چې وایي: د فرانسي ډېرو خلکو د فرانسي دلوی انقلاب په وخت کې دبشر د حقوقو هغه کتاب چې د ځینو خیانت کارانو د بدن پوستو نه ورو قایه سوي وه په لاس راوړ. دغه خیانتکاران خلک د فرانسي دنهضت اود بشر دآزادي مخالف وه، نو پدې جرم ووژل شوه او پوستونه یې د نوموړي کتاب پشتي شوه.

کله چې بیا [ژان ژاك روسو] داجتماعي تړون کتاب ولیکی او په فرانسه کې خپور سو، دفرانسي ځینو غټانو په ټوکو او استهزا استقبال کړه کله چې دفرانسي انقلاب تمام سو د فرانسي ملت دغه غټان په دغه جرم ونیول پسې مړه او پوست یې کړه پوستونه یې د نوموړي کتابو وقایې کړي چې اوس هم دفرانسي او انگلستان په موزیمو کې په دغه شکل لیدل کیږي.

دانگلستان په موزیم کې یو بل کتاب چې د «ویلیام کودر» د بدن پوست ور وقایه شویدی لیدل کیږي. داسړی یو لوی بدکاره او جاني ؤ اوډېری بېگناه ښځې یې وژلې وې، آخر په همدې گناه ووژل شو او د هغه وخت نامتو جراح یې پوست د بدن څخه وکیښ او د کتاب پشتي یې کړه پسر دغه کتاب دده دجنایاتو ذکر او یوه نېټه چې ۱۸۲۸ کال ښئي هم لیدله کیږي.

دانگلستان په یوه موزیم کې یو بل کتاب هم سته چې د یوه انگلیسي مجرم پوست یې ور وقایه کړیدی. دا سړی هم لوی جاني او په دغه تور وژل شویدی، د کتاب په آخر کې پخپله دده عکس په داسي حال کې لیدل کیږي چې په دار ځړیږي.

داوې دبشري جنایاتو په بدل کې عجیبې سزاوې.

اردې ټولو چې د سړي توجه ورجلبوي اود افراطي عشق یوه غټه نمونه ده هغه د فرانسي د نامتو ستوري پېژندونکي (کاپل فلاماریون) د کتاب وقایه ده چې د یوې ښکلې ښځې د څگر د پوست څخه ورجوړه شویده نکل یې داسي دی:-

وایي چې دغه ښځه پر نوموړي منجم مینه وه کله چې دامړه کېده وصیت یې وکړ چې زما [...] څگر د پوست څخه دی دد[...] کتاب ته وقایه ورجوړه شي او زما له خوا دی د یو[...] عاشقانه سوغات په توگ[...] ورو ړاندی شي. «طلوع

# د نړۍ...

د ٥ مخ پاته

شویدی نو ځکه حرکت یې بطی دی ولې کوچنی ذرې دومره په تیزی په حرکت کې دی چې زموږ سترگې یې د لیدلو تاب نلري او مېخوك داهم نسي ویلای چې دا ذرې چیری ځي؟ د فرانسي یو فزیك پوهاند «ان بر» وایي چې داو بو یا هوا په هر مکعب سانتي متر کې چې د یوه کال په دوران کې د نوموړو ذرو له حرکت څخه کوم «قوت» حاصلیږي دهغه اندازه د هغه قوت سره برابره ده چې په یوه ساعت کې د اوږدکاږي له ذرو او کومو تیو څخه پیدا کیږي.

دا ټول قوت پر له پسې تولیدیږي او بیله دې چې موږ دې درك وکړو په مصرف رسیږي، دلته صرف موږ ته یو حیرت پیښیږي او دا یو ښتنا را ولاړیږي چې آیا ددې قوت تولید او مصرف د څه لپاره دی؟ خو تر اوسه د بشر طاقت دې ته نه دی رسېدلی چې د داسي پوښتنو جواب دی وویلای شي.

دوست محمد [ تره کی]

«۴»

# د گرمسیر د کلتور وضع

## «دوهم فصل»

دمخه تردې چې د گرمسیر د خلکو ثقافتي وضع تر مطالعې لاندې ونیول شي باید د کلتور د اصلي کلمې لغوي معنا او اصطلاحي مفهوم پدې فصل کې واضح سي نو وروسته به بیا اصلي موضوع ته راسو .

کلتور چې یوه انگلیسي کلمه ده لغوي معنا ئې ثقافت یا فرهنگ او بعضې خلک داجتماعي ودې او نمو معنا هم ځینې اخلي .

په اصطلاحي ډول کلتور دیوې جامعې د علم، معرفت، اقتصاد عرف ؤ عادات، روایاتو، ادبیاتو، عقایدو او ژبې، تاریخ، هنر صنعت، کرهڼې، موسیقي او افسانو مجموعې ته وایي.

انساني جوامع او ملتونه هر یو ځانته مخصوص او علیحده ثقافت لري، اودغه رنگه په هر ملت او جامعه کې ثقافت ؤ کلتور بېل، بېل اړخونه لري اوهمدغه رنگه د ثقافت هر اړخ ځان ته یوه بېله موضوع ده چې د هغوی تفصیل دلته ځوله نه راوستل کیږي په لنډ ډول ئې یادونه کوم.

د ثقافت یواړخ کلتوري انسان پېژندنه ده چې داموضوع دانسان فزیکي او اجتماعي وضع تر څېړنې لاندې نیسي .

د ثقافت بل اړخ داجتماعي انسان پېژندنه ده چې دا موضوع په اجتماع کې انساني خپلوي روابط ، اقتصادیات، قوانین، عرف ؤ عادات دخلکو تر څېړنې لاندې نیسي.

د پورتنې تعریف څخه داسې معلومیږي چې په انساني جوامعو کې هر وخت او په هر ځای کې ثقافت موجود ؤ . بعضې کلتور د انساني ژوندسره په یوه جمعیت کې لازم شي دی په هر شکل چې وي مگر هر ملت او هرعصر ځان ته بېل، بېل خصوصیات لري چې د هغه ملت اوعصر دانسانانو دفکر نمایندگي کوي. دهمدغه عصر دخصو- صیاتو بدلون اودانسانانو فکري انکشاف دی چې یوعصر په بل عصر تبدیلوي او اجتماعي سیر تکامل ما بین ته راولي.

پورتنې تبصره د کلتور دعمومي تعریف په باره کې ؤ وروسته تردې به خپل اصلي هدف ته چې د گرمسیر د اجتماعي کلتور په باره کې ؤ تر مختلفو عنوانو لاندې وگرانو لوستونکو ته وړاندې کړو .

دهلمند دناوې د ټول ولایت کلتور تقریباً متحد شکل لري اما په عین حال کې یو د بله لږ فرق سره لري چې عموماً پر درو برخو دا منطقه د کلتوري نقطه نظره جلا کوو .

۱. منځنې برخې :

ددې برخې خلک د ثقافت د نقطه نظره نسبت و شمالي او جنوبي برخو ته په مخکې دی د خلکو ذهنیت ئې ښه دی د علم او معرفت د خاوندانو فیصدي ئې نسبتاً

و نور هلمند ته ورېږده .

شمالي برخې :-

دا برخې اکثره غرنۍ دي، سړکونه او اساسي لارې پکښې ډېرې نه دي، خلک ئې مرکز ته لږ راځي او د منځنۍ برخو د خلکو سره هم ډېر تماس نلري ځکه نو ثقافت ئې نسبت و مرکزي برخو ته وروسته پاته دي .

جنوبي برخې :-

ددې برخې د خلکو فکرونه نسبت و پورتنۍ دوو برخو وخلکو ته ساده او ابتدائي دي او مطابق ددوی د فکرو سره کلتور ئې هم ابتدائي دی، مگر هغه جنوبي برخې چې د هلمند د ولایت مرکز (بست) ته نژدې تنګ او رانګ ورسره لري چې د تېرو څو کلونو راپدېخوا ئې کلتور ښه ترا وده کړېده، د هغه جملې څخه دګرمسېر شمالي او منځنۍ برخې هم دي .

دګرمسېر اجتماعي کلتور د هغه وخت راپدېخوا چې د هلمند د زراعتي انکشاف عمومي ریاست په هغه ځای کې په فعالیت شروع کړېده ښه ترا مترقي شوېدی او د خلکو ذهنیت تغیر کړېدی، چې دا تغیر به په لاندنیو عنوانو کې واضح شي .

## مختصر تاریخ

پر هغه ځای باندې چې د انسانانو مختلفو نسلونو په متداوم ډول سره د یوې زمانې په دوران کې ژوند کړی وی او د انساني استوګنځې امکان ئې درلودی، که څه هم هغه محیط یو بل وخت کې د انسانانو څخه خالي وی، خو دغه محیط که کوچنی یا پراخ وی او جهاني شهرت ولري په دوامړو حالتو کې بیا هم د یوې معینې تاریخچې درلودونکی دی، مگر عموماً په کتابو کې د لوی او پراخ ځایو چې د یوه مملکت پنامه یادېږی او په هغه کې د یوې اوږدې مودې لپاره خلکو په پرم ژوند کړی وی د خلکو وضع ئې په مختلفو دورو کې او یا د هغه کسانو کارنامې، فعالیتونه او فتوحات چې تر مملکت د باندې ئې کړی وی د یادداښت او تاریخ په ډول درج کېږی چې آینده نسلونه ور باندې خبر شي . مگر د کوچنې او د نظره وتلې ځایو په باره کې لیکنې او یادداښتونه ډېر لږ لیدل کېږی علت ئې دادی چې کوچنې ځایونه عموماً د لویو ځایو یوه برخه وی نو ددې دپاره چندانې ضرورت نه لیدل کېږی چې علیحده تاریخ دی د یوه محدود

ځای پنامه ولیکل شي .

هغه وخت چې فرخي د ابوالمظفر احمد چغاني دربار ته ورغله دده په مدح کې شعرونه ویلې دي چې د هغو څخه ئې د داغ ګاه مشهوره قصیده د نمونې په ډول راوړو .

چون پرنده نیلګون بهدری
پوشد مرغزار
پرنیان هفت رنګ اندر سر
آورد کوهسار
خاك را چون ناف آهو
مشکذا برې قیاس
بیت را چون پر طوطی برګ
رویدی عمار
دوش رفت نیمشب بوی بهار
آرد باد
مبداء باد شمال و خرما
بوی بهار
باد ګوی مشك سوده دارد
اندر آستو
باغ ګوی بستان دارد
اندر کنار

فرخي پهله څه وخته د چغانیانو د دربار څخه دغزنوی دربار ته تللی دی یا غزنوی دربار کې د سلطان محمود په وخت کې ئې ښه عزت درلودی او د محمو سره په ځینو سفرو کې لکه سومات، وریس، کالنجر قنوج او نور چې وهند ته کړېدی فرخي ورسره

ددې څخه معلومېږي چې فرخی دسلطان محمود مخصوص ملګری و . سربېره پرصفاري او غزنوي شاعرانو په سیستان کی نور ادیبان او شاعران هم سته چی دلته ئې فقط نومونه اخلو لکه:-

شمس الدین محمد بستی، ظهیر الدین ساکزی، شمس الدین محمد ساکزی، حافظ میر سیستانی، قاضی لاغر سیستانی، میر مهدی سیستانی، مولانا عاشق، او مولوی احمد . دا ټولو شاعرانو او ادیبانو د سیستان په حوزه کی پر مختلفو ځایو شعرونه ویلی دی شاید ددوی شعرونه دی داوسنی ګرمسېر برخو ته هم منسوب وی.

دهو تکو، نادر افشار په وخت کی داځایو نه اود «سیستان برخی» اکثره د ملوك الطوایفی په ډول وی شاید پر ګرمسېر او شاوخوا سیستان باندی دی پښتو شعرونه او ملی سندری ویل کېدلی مګر

چندانی معلومې نه دی ځینی لنډی او بیتونه یا د ښادیو په وخت کی چی ځینی بیتونه جوړ سویدی خوله پرخوله دخلکو د ... بینه څخه اوریدل کیږی لکه چی په ودو کی وایی:-

زموږ واده پر ګرمسېل      زناوی ژر راسپروینه
راپسی د سپږ و سېل

یو نفر شاعر چی تقریباً لس کاله دمخه مړدی دګرمسېر د «لکی» په کلی کی ئې ژوند درلودی . ده د شعر ویلو سره ښه ذوق درلود دده د شعر څخه ددوو غزلو کسرونه او دوې، دوې مصرعی دنمونی په ډول راوړو .

عشق دی لېونی کړم الفت کړه عبدالله
ستا مینی زه رسوا کړم نظر وکړه پرما

---

څه کوم ژوندون چی جدایم ددلبره
حال می دمجنون دی بادوم خاوری پرسره
سر پر صحرا ګرزم همېشه یمه ګویا

---

عبدالقدوس تنها ستا ددیدار په تمنا
عاشق یمه صادق یمه په حال می سه آګاه
سردار یی دخوبانو ته منلی یی هرچا

په لاندنی غزل کی و خدای [ج] ته عذر اود شاعر تصوفی جذبه معلومېږی .

زه عاجز بنده ستایم په دعایم یا الٰهی
فضل غواړم زمار به ګنهګار یم یا الٰهی

---

تمنا د عاقبت می منظور کی په دربار کی
مجرم یم نهایت په نیکی می هدایت کی
دیدار دعاقبت می په نصیب کی مهربان یی یا الٰهی

---

عبدالقدوس مسکین یم شایق دخپل دین یم
توبه می کړې قبوله شفاعت هم د رسول
دارین را عنایت کړې ثنا خوانه یم یارب

✲✲✲

## د محیط پوهه

### او عقلی بصیرت

عقل او بصیرت دواړه انسانی قواوی دی مګر وده او نموئې اکثراً په اجتماعی او کورنی محیط پوری

اړه لری . که یو طفل د ابتداء څخه په هغه کورنی او اجتماعی محیط کی تربیه سی د شاوخوا او دده د

ماحول دخلکو عقل او ذهنیت ئې ښه وده کړی وی طبعاً هغه طفل چی لوی شی د کامل بصیرت او عقل خاوند

وی، برعکس که محیط تاریک او د خلګو ذهنیت ئې ښه ترا وده نه وی کړی نو د ماشوما نو تربیه ئې ابتدائی او ذهنیتو نه ئې ښه ترا انکشاف نه کوی ، تاریک فکره او نافهمه پاتېږی. همدغه د محیط او ماحول تربیه ده که سمه وی د لوړ شخصیت خاوندان پکښې پیدا کېږی او که ناقصه وی د هغه بد محیط د ما بینه لری جنایت کاران پورته کېږی .

د ګرمسېر د اکثرو خلګو خصوصاً د بزګرا و مزدور کاره طبقې فکر چندانې انکشاف نه دی کړی د خبر وطرز ئې ابتدائی ، د کلام فصاحت نلری د خلګو عمومی ذهنیت په عوامه طبقه کې تقریباً د سلو کالو مخکې شانته دی .

د دوی د ژوندانه ټول لوازم آلات، اسباب، خوراك ، لباس، استوګنه او اجتماعی طرز ساده راغلی دی . د کـرهڼې آلات ئې د پخوانی آلاتو په شان دی.

د ګرمسېر منطقه چې د تاریخ د نقطه نظره کوچنی او محدود ځای دی ځان ته مستقل تاریخ نه لری . پدې لیکنه کې چې د ګرمسېر پر اجتماعی وضع باندی لیکل کیږی د هغه محیط و تاریخی سیر ته په لنډه توګه ضرورت سته موږ دلته ددې مقصد دپاره سر سرسری نظر د سیستان تاریخ ته چې د ګرمسېر د پخوانی سیستان یوه برخه وه رجوع کوو تر څو چې دا مقصد ترسره شی.

د پخوانی سیستان حوزه چې د فراه د آخره څخه بیا د چخانسور او د هلمند دولایت پرخوا تر لښکرګاه پوری را رسېده یوه پراخه او حاصلخېزه ارشو وه چې د قبل المیلاد څخه بیا تر نن ورځی دانسا نا نو د مختلفو نسلونو استوګنې پرشویدی د متداوم استوګنې علت ئې دا ؤ چې د هلمند نامداره سیند پکښې غزېدلی او د دواړو څنډو مځکې زراعتی او د خلګو ګذاره د هغه وخت څخه تر نن ورځی ښه پکښې کیږی .

د تاریخی سیر په سلسله کې لومړی پلا هغه وخت چې یونانی سکندر خپل فتوحات د شرق خواته شروع کړه او د فارس تر نیولو وروسته د افغانستان وخواته را تېرشو که څه هم د هرات مشر « ستی-یوزن» او د باختر مشر«بسوس» او د سیستان مشر «باستا نتا نس» د سکندر د مخنیوی په باره کې په ګډه اتفاق وکړ او د لومړی«دار-یوش»د فارس پاچا ئې مړ کړ ،مګر د سکندر په مقابل کې مغلوب سول سکندر په پوره اقتدار هرات،سیستان او هلمند ئې محاصره کړه او خپل حکومت ئې قایم کړ، چې پسله څه وخته دا حکومت په سیستان کې ضعیف سو د باختری او یونانی کورنی جلا جلا حکومتونه ور سپدل

تر څو چې یوه بله طایفه آریائی خلګ چې د سیحون د سیند څخه راتېر سول او د هندوکش په شمال کې

د یونانی او باختری کورنیو ته ئې سقوط ور کړ او د اسکا-نیانو سره ئې جنګ وکړه څو چې دوه پاچهان ئې مړه سول ، وروسته د مغلوبیت په وخت کې د سیستان وخواته راغله ، د سیستان خلګ چې د یونا نیانو څخه

په تکلیف ؤ دا صحرائی بدویان چې ئې ولیده نسبت ویونانیا ته ئې دوې ښه وبلل نو ددوی سره ئې اتفاق وکړ

تر څو د ساکانو د ما بینه یوه قبیله د پهلوا په نامه پیدا سوه چې هغوی د ۹۱،۴۸ ق م پوری په سیستان کې حکومت

وکړ ، ویل کیږی چې دوی پر هغه ځای د ساکستان نوم کښېښود چې نن ورځ هغه په کثرت د استعمال سیستان

شویدی. تردې وروسته هغه وخت چې د کوشانیانو پاچا د انحطاط په دوره سو نو یفتالیانو پر سیستان تصرف پیدا کړ تر څو چې د ساسانیا او یفتالیانو جګړه (۴۲۵م) کې پېښه او ساساني پاچا مغلوب او د لوط پر دښت د یفتالیانو د خوا ونیول سو تر څو چې د خپل زوی په تضمین خلاص شو.

وروسته تر یفتالیانو د سیستان منطقه د ملوك الطوائیفي په ډول د خانانو د خوا اداره کېده پدې وخت کې د یفتالیانو بقایا کابل شاهان په خارجي شخړو اخته وه د ملوك الطوائیفي د دورې څخه وروسته د سیستان پر ساحه د عربو هجوم راغی دا د دریم خلیفه

حضرت عثمان «رض» د خلافت زمانه وه چې لومړی پلا د سیستان حوزې ته لومړی وار «ربیع» د «زیاد» زوی راغلی هغه وخت چې د هرات خلکو د عربو نائب مړ کړ نو د سیستان خلکو هم «ربیع» د زرنج څخه وایستی چې بیرته بصرې ته ولاړ او د بصرې نائب د خلیفه

په امر د «زیاد» زوی را ولېږی او زرنج ئې ونیو. اما د بست خلکو مقاومت ورته وکړ څو مات سو، او بصرې ته ولاړ. بله پلا د بصرې څخه د خلیفه په امر «ثمره د عبدالرحمن» زوی راغلی چې فاضل حقوقدانان او فقها ورسره ؤ، سیستان ئې محاصره کړ، د فقهاؤ مشهور سړی «ابوالحسن بصری» ؤ.

تردې وروسته عربي حکومت د سیستان پر حوزه استقرار حاصل کړ او آرامي شروع سوله، مګر د دغه ځای نمایندګان چې په عربي دربار کې ؤ خپل په مابین کې پټ د آزادۍ حرکت درلودئ او غوښته ئې د آریانا پخوانی خپلواکی لاس ته راولي د نمایندګانو د جملې څخه چې د آزادۍ فکر ئې درلودئ: طاهر، خراساني ابوالمسلم، د سیستان، محمد، بشیر او حمزه نامان وه.

د عربو پاچا چې په سیستان کې حکومت درلودئ «واثق الله» نومېدئ په ۲۴۴ه کال دده په زمانه کې د «صالح» په نامه راپورته سو، او عباسی حکومت ته ئې په سیستان او نورو برخو کې د هلمند او اراکوزیا ته خاتمه ورکړه او یو نفر «یعقوب» نومی چې عسکری

سړی ؤ د هغه په ملګرتیا ئې آزادی واخستل او یعقوب ئې خپل مشر کړ، مګر یعقوب وروسته تردې د حکومت د نیولو فعالیت کاوه صالح چې دده دې اقدام څخه خبر سو یوې نامعلومې خوا ته وتښتېدئ د سیستان خلکو د «درهم» په نامه یو سړی خپل پاچا

وټاکی د درهم وغوښتل چې یعقوب مړ کې، یعقوب چې په خبر شو د کود تا په ډول ئې د حکومت واګې په لاس

کې ونیولې، وروسته ئې طاهري حکومت ته خاتمه ورکړه او د صفاری کورنۍ په نامه ئې په سیستان کې

حکومت جوړ کړ امکان لري چې د موجوده ګرمسېر د صفار د کلي نوم دې د صفاریانو د زمانې څخه په

یوه علت پر دغه ځای پاته وي یا شاید د یعقوب لیث د حکومت نیول دې لومړی پلا پر دغه مځکه باندې وي (مګر

دا خبره د یوه سند له مخې نه کوم بلکې یو تخمین کوم) د یعقوب وروسته دده ورور عمر لیث د سیستان حکومت

ته ورسېدئ چې په ۲۸۷ه کې د سامانیانو د حملې په نسبت د اسمعیل پاچا په لاس میداد ته بندی ولېږل شو چې هلته په زندان کې مړ سو.

تر صفاریانو وروسته د سیستان ساحه د ساماني حکومت جز ؤ، هغه وخت د ساماني دربار لوی مارشال البتګین د یوې کود تا په ترڅ کې ساماني دربار ته خاتمه ورکړه.

د آل ناصر کورنۍ چې البتگین ورته منسوب دی ددې کار سو چې پدې وخت کې د هلمند دوو شاهزادګانو «بای نور» او «توغان خان» په خپل منځ کې جنګ سره وکړ . البتګین پر هلمند او سیستان موقع پیدا کړه اودا برخه ئې ونیول. باید وویل شي چې د

آل ناصر خاندان چې غزنوي خاندان دی دهلمند په ثقافت کې ښه د قدروړ خدمت وکړ اود سیستان دحوزې کلتور ئې ښه ترا اوچت کړ د البتګین وروسته دده زوم «سبکتګین» پاچاشو چې تر هغه وروسته ئې زوی محمود په غزني کې حکومت ته ورسېدی . سلطان محمود

دغزنوي خاندان ستر شخصیت و چې په هلمند کې دقدر وړ خدمتونه کړیدی، د لښکرګاه دحکومتي ماڼۍ او عسکري چوڼۍ اساس دده په وخت کې ایښوول سویدی چې دلښکري بازار په نامه یادېدی، تر ده وروسته دا ځای دده د زوی سلطان مسعود دخوا ښه ترا تکمیل شویدی.

محمود او مسعود به د ژمي په وخت کې ځومیاشتې د غزني څخه دخپل ټولو شاعرانو، افسرانو اود غزنوي دربار د عملې سره دبست علاقې ته نقل مکان کاوه اود موجوده لښکرګاه څخه به ئې د ملک اداره کوله. ددوی ددورې دشعر و ادب، هنر، علمیت اونورو اجتماعي اوضاعو طبعاً دسیستان اوبست دخلکو په ذهنیت کې ښه ترا په هغه وخت کې اثر اچولی وو .

تر غزنوي کورنۍ وروسته د غوریانو کورنۍ پر سیستان هجوم راوړی ، غوري پاچا جهان سوځونکي علاؤالدین دهغه انتقام په سلسله کې چې غزنوي پاچا دده ورونه ور وژلي و دخپلو ورونو مړي دغزني څخه وغور ته وړي وروسته غزني وسوځی او یوه میاشت

وروسته ئې د لښکرګاه سلطنتي قصر او د بست ښار ته ئې هم اور واچاوه ۸۰ کاله تردې دحشت وروسته په ۱۳م قرن کې د چنګېز هجوم پر بامیان، آراکوزي اوهلمند باندې راځي . بندونه، ویالې

زراعتي مځکې، ښارونه او ملي مرکزونه سوځي او خرابوي کم چې سیستان هغه تمدن د غزنوي دورې په وخت کې حاصل کړی و سخته صدمه وینی .

تر چنګېز وروسته بیا تر نن ورځې پنځه نیمه پېړۍ دمخه د تیمورلنګ هجوم راځي چې تیمورلنګ دسیستان مشهور بند، ویالې، تعمیرات اونور آثار خراب کړه. هغه خرابي چې د چنګېز دلاسه په سیستان

کې پېښې سویدې پوره نه دي ترمیم سوي چې دده د نسل دوهمه پلا «تیمور» پر راورسېدی او ښه ترا ئې داځای خراب کړ.

د تیمور تر هجوم وروسته سیستان د یوه مړه ښار په جمله کې حساب سو .

وروسته بیا پر سیستان د صفوي (ایراني) خاندان سلطه تر آراکوزیا پورې رارسیږي چې په پای کې د

شاه حسین صفوي په زمانه کې داځای دصفویانو څخه خلاصیږي او د کندهار هوتکي خاندان د سیستان اداره د کندهار څخه کوله.

تر هوتکي خاندان وروسته د ایران له خوا نادرافشار راپور کیږي چې سیستان، کندهار اود

هلمند نوري برخې نیسي او هند ته ورځي، کله چې نادرافشار په هند کې ووژل شو تر هغه وروسته ابدالي

احمدشاه چې د دوراني کورنۍ مؤسس دی په کندهار کې پاچا کیږي او

د سیستان واک هم په لاس کې اخلي .

«پاته لري»




ښاغلی [مخلص]

# اور د مینې دی چې کور د عاشق سوځي

یادي نه ځي د خوږې مینې پر لار څوك
یادي نپرشي تر خپل سر چې کړي دا کار څوك

سې به ورك که افلاطون د زمانې وي
چې ورګډ شي د مینو په بازار څوك

د پېغور کاڼي به تل باندي اوریږي
ولې نه پرېږدي پر سمه تړه خوار څوك

اور د مینې دی چې کور د عاشق سوځي
که نه څه وړي پر سر د غم ناتار څوك

چې په وېره خوله د خلقو ترمنځ خاندي
څه خبر د زړه په وینو د آنار څوك

زه «مخلص» به حال د ښې خوږو ځرګنده کړم
ګټه نه کوي پالنه د پرهار څوك

---

د «حمید»
څلوریځه

عاشقي ده واقعي د سود سودا
ځکه سرور کوي شمع په خندا

چې بازه شي سر ومال په عاشقي کي
دا سودا ده دغه سود لره پیدا

# څلوریځی

څوک چی تل ګټوی د خپل ځان په ستایش
د هغو پر حال ژړا راځی وېش وېش
سر ئې نشته که ئې پورته کړې خولی
د اوبو د سرکوبی ده منځ ئې تش

✡ ✡ ✡ ✡

له رشوته چی کړی درست عمر معاش
خودبايلل به دی په نرد وی یا په تاش
چی په دې توګی ګټی هسی ښندی
جا نه ستا پرهوښیاری باندی شاباش

✡ ✡ ✡ ✡

غټ کوټی لکه کډو لری میان تش
در څر ګند خپل نه کړی لوړ په ګمان تش
موږ په دې کړو پرتا خیال د ناپوه
چی ځان ډک ګڼی له عقله جهان تش

✡ ✡ ✡ ✡

مال دی ډېر کړ لا نارې وهی ایکاش
که څه نورمی لاس ته راووست په تلاش
دقارون هم پر ښه نشو څه ګمان
چی پرتا باندی به زړه شی دا قماش

✡ ✡ ✡ ✡

پېلوی و ینه دنیا چندن او غز
خرڅ به نشی د اوزګړی پوست په خز
عزت هغه کام میندلی چی ئې مال
په زرو غوټو کښی کم نه وی یو ګز

✡ ✡ ✡ ✡

پر دنیا چی په وفا شی څوک ممتاز
هر سړی بی کړی له ځان سره همراز

شاغلی [لایق]

# وړې قطرې

څه کوی دا سره کوچنۍ وریځه له آسمان سره؟
څه غواړی ړومبسکی له موجونو د طوفان سره

ولی دا مخ تور بشر ناری د آزادی وهی
څه دی دلاسماتی دمړوند له امتحان سره

نه نه، ای شاعره ته وهمونو غولولی ئې
ګوره چی لا څه کړې دامجبور له این وآن سره

داماشوم ړومبسکی په موجونو کی اسیر نه دی
دا بخر کی وریځه سپکه نه ده له آسمان سره

دې وړو ته ګوره په واړه نظر ونه ګورې
مل که ئې قطره نه وی نو څه دی له طوفان سره

داوړی قطرې به عالمونه لاندی باندی کړی
یو که شی له میل د زمان اود مکان سره

مه اخله نظر بلند نظره له دې تیټو نه
سپک به دی شی وزن دجګوالی له میلان سره

---

ادبی ټوټه

## سورګل!!

یو اځی د نظرلاس ور رسېدلای شو؛ دهسک کمره دپاسه سورګل زرغون شوی ؤ، د اوچت اونری پانی په سر ناست وی. د لمر طلایی تاج ئې پرتندی اېښی ؤ اودغره په کاڼو، بوټو ئې سلطنت کاوه.

پرخی به ئې مخ او سر و پنجه د سهار نسیم به ورته پخپله زنګو کی نرمی جوټې ورکولی.

خو سره ګل، ته څان یوازی ښکار یده، درسته شپه به ئې پرخپله بېکسی ژړل.

د نظر خاوند څوک نه ؤ چی سره ګل خپل د جمال ننداره د هغه په ستر ګو کی کړی وای په اسرار به ئې د خوشبو ېکی وږمی یو خوابل خوا خپرولی.

بس دانسان تشو ګتلو ته به سهار او ماښام په لار ولاړ و.

خو افسوس؛ چی د نظر خاوند څوک نه وو!!

هو! چی دچا ښکلا او حسن په کاڼو او بوټو کی عبث تېریږی خود به ئې زړه د وینو ډک وی!!

---

محمود بند نه وو په لومه د ښایست
مېن شوی وو پر ښه خوی د ایاز

✡ ✡ ✡ ✡

که زر کاله یې ژوندی پای به شی مړ
هوښ کوه چی ګورته ولاړ نه شی ککړ

«مخلص» ښه دی نن زحمت نسی
نه قیامت کښی په مردارو خوړو پړ

ښاغلی [الفت]

# د حقیقت ورځ

چې پلو له مخه لیری د هر څه شي
دا رنګینې جامې څیرې دریا شي
حقایق ټول را ښکاره شي له حجابه
پټ کارونه را څرګند زما او ستا شي
که رازونه که رمزونه که اسرار دي
لکه ستوري د آسمان هسې رسوا شي
مقصدونه ، غرضونه ، عملونه
بې پردې او بې ستره په بر الا شي
د آبیس رنګونه ټول والوه شي محوه
په خپل څېر ښکاره روا او ناروا شي

د هر چا زړه ګنبې چې هر څه دي لیکلي
دې په خپله د هغه نقش ګویا شي
هغه دغه ښه او بد مخونه لوڅ کړي
توره شپه له منځه ولاړه شي سبا شي
لیک د حق او حقیقت وي په هر لاس کښې
د تیارو شپو واقعات واړه رڼا شي
ډیر ښایسته او سپین مخونه به تک تور وي
ډیر ښاغلي به په دغه ورځ سرتور وي

# سکته او سپما

پور در لوول د ظلمونو نکي په مقابل کې یو ځول بند دی.
پور وړی پلمه دې چې په ځان دې پوه شي هیڅ وخت سم فکر او ښه خوب نه لري.
پور وړی چې هر ځای ولاړ شي فکر ئې خراب، او غوږونه ئې ترستر ګو دوري، دوري ګیسږ ی.
پور وړی د مسافری په نیت کې یوره آزادی نه لري.
د نه پور وړی کېدو ښه لار په خرڅ کې سکته او سپما ده.

ښاغلی [غمشریك]

# لېونی سندره

د چادو بډو تـړو کونډو یتیمانو په نوم
د چا دلوږ لغړ بې وزلو ماشومانو په نوم
د ځینو خوارو ، غریبانو بېکسانو په نوم
دهغه ځیری ګرېوانونو مظلومانو په نوم
ما لېونی تهٔ لېونی سندری خوند را کوی

دچادچاودوچاودو پښواوچاددزډو په خاطر
دچا د ترمو ترمو اوښکو تونېدو په خاطر
دچا د لاسو د تهاکو او سلګو په خاطر
دچا د وېر او د ژړا او ګړاوو په خاطر
ما لېونیٔ ته لېونی سندری خوند راکوی

زه خو د مینی لېونی یمه غمونه ګالم
د یار د شوخ نظر دپاره ګړاوونه ګالم
په احترام د خپلی مینی به دردونه ګالم
لوږی او تندی هم تنګخی او شوګیرونه ګالم
ما لېونی ته لېونی سندری خوند راکوی

بس د وطن د سرلوړی او آبادی دپاره
دهغو اوومليونو ورونو خپلواکی دپاره
د قام او ملك د لوړېدو او ترقی دپاره
سر او مال دواړه جارومه د سیالی دپاره
ما لېونی ته لېونی سندری خوند راکوی

ما تهٔ د کور او کلی دواړونه صحرا غوره ده
د تاج او تخت ځینی مجنون ته یوه لیلا غوره ده
د بې دردانو له عیشو راته ژړا غوره ده
د بې غمی نه راته مینه او سودا غوره ده
ما لېونی ته لېونی سندری خوند راکوی

زما جګړه ده بې دردانو ظالمانو سره
د رشوت خورو خاینانو حاکمانو سره

د قام فروش او بې‌ضمیره انسانانو سره
د ځان پرستو جاه طلبو بې ننګانو سره
ما لېونی ته لېونی سندری خوند راکوی

زما سودا ده د وطن بله سودا څه کوم
زما ژړا د قام دپاره زه خندا څه کوم
که په دې لاره کښې لوګی شمه پروا څه کوم
دهغو مستو عیش پرستو مشغولا څه کوم
ما لېونی ته لېونی سندری خوند راکوی

زما جنون هسې جنون دی چې خودی راولی
زما مستی هغه مستی ده چې هستی راولی
زما غمونه هسې دی چې خوشحالی راولی
دا ترمې ،ونښکې مې وطن ته آبادی راولی
ما لېونی ته لېونی سندری خوند راکوی

که لېونی یمه خو ننګ لرم پښتو لرمه
دزړه جهان کښې دقومی لوړتیا آرزو لرمه
غم او سودا د خپلو ورونو پښتنو لرمه
زه «غمشریك» دقام غمونه په څولو لرمه
ما لېونی ته لېونی سندری خوند راکوی

## هنر

هغه څه چې باطن په تظاهر سره ښکاره کوی هنر دی د د باندنی او دننني قشر درلوونکی دی چې په د باندې شکل کې ښکاره کېږی.

یعنی د باندې قشر ، مثلاً په موسیقی کې اصوات ، په شعر کې کلمې په نقاشی کې رنګونه ، چې دا ټول حسن بلل کېږی مګر حال داچې د هنر باطنی قشر هیڅ نه لیدل کېږی. چې هغه عبارت د ژوند ، حالت افکار او داسې نورو څخه دی.

هنر یو انسان همېشه مجذوب ګرځوی او هر هغه څه چې انسان جذب کوی وایو چې: ښکلی دی یعنی د ښکلیتوب قیمت ئې خپل دی نه دبل څه په خاطر.

هنر دژوند لازمی شی دی او یو هنرمند باید پخپلو تېزو او کنجکاو افکارو هر څه وپلټی.

هنر او اخلاق دواړه جذب‌کوونکی دی. خو فرق ئې دادی چې اخلاق د کردار عکس او هنر د ژوند د رهنمایی هنداره ده.

هنر او فلسفه دواړه د یوه ننني عالم حکایت کوی خو فرق ئې دادی چې فلسفه د کلی مفهوم سره سروکار لری مګر ترسیم کولای ئې نسی خو هنر په یګانه او بې مانند مفهومو سره لګیا وی چې هغه څه واضحاً ترسیموی.

هنر مختلف ډولونه لری:-
ادبیات ، موسیقی ، نقاشی مجسمه سازی ، معماری ، زینت‌کاری.

پاته په ۱۸ مخ کی

# شپېلۍ

لکه څنګه چې د موسیقۍ د آلو اصلي تاريخ معلومول ګران کار دی.

نو موږ هم د شپېلۍ د پوره پيدايښت په باره کې څه نسو ويلای.

پخوانی آريايانو د موزيك درې ډوله آلې پېژندلې لکه تار لرونکې آلې پوك وهونکې او لاس وهونکې، د پوك وهونکو آلو په سلسله کې يوه شپېلۍ ده.

شپېلۍ د ساز په ټولو آلو کې يوه ساده آله ده لومړی طبعي آواز چې سړي ئې د خوند د ښودلو د پاره د ژبې او غاښو نو د سوري يو په کمك راوباسي شپېلۍ ده، دغه د خولې غاښو او ژبې طبيعي آواز که په کومه آله کې ښکاره شي نو شپېلکۍ او شپېلۍ ځنې جوړه شي.

شپېلۍ يوه وړه آله ده چې په آواز کې د خولې شپېلکۍ ته ېخې ورته ده او لرلو يه ده ددې د پاره چې مکرر او پرله پسې آوازونه راوباسي.

واړه هلکان د غنمو له ټانټې ځخه واړه، واړه شپېلکۍ يا پونکې جوړوي چې د پوکولو پواسطه آوازونه ځينې راوزی. چې داسې آلې د شپېلۍ لومړی شکلونه دی چې پدې حساب شپېلۍ د ساز يوه ډېره پخوانۍ آله ګڼلای شو.

نظريه دا ښکاره کوي چې کوم وخت چې انسان د خولې شپېلۍ وهل زده کړی وی نو ژر به ئې د شپېلۍ وهلو چل هم ورپسې زده کړی وی.

د ويدی سرودونو له مخې معلوميږی چې شپېلۍ څلور زره کاله پخوا د بلخ او باختر په شاهي دربار کې وهل کېدله.

د ريګويد يو شاعر وايي چې: «د شپېلۍ او تولۍ ږغ د «ياما» له بختورتاټوبي او مسکن ځخه اورېدل کيږی.»

هر کله چې د ياما ټاټوبی په بلخ کې د «وارا» مشهوره ماڼۍ وه نو ځکه دغه سيمه د آريا ؤ د شپېلۍ لومړی مرکز کيږی.

«جارج فارمر» ليکلي دی چې د چين له افسانو ځخه داسې معلوميږی چې دوی څلورزره کاله پخوا د شپېلۍ د راوړلو د پاره «لنك لن» نومي سړی «بلخ» ته ليږلی ؤ.

د ننګرهار د هډې په راوتلو ښرينو تصويرونو کې شپېلۍ هم د ساز په آلو کې د وهنې په حال کې ليدل کيږی او

د کنيشکا د زمانی کومې مجسمې چې راوتلې دی او عکسونه ئې د پښتون ږغ په مجلو کې چاپ شويدی په هغه کې د شپېلۍ عکس هم په پوره ډول ښکاری.

له دې خبرو ځخه ځرګنديږی چې شپېلۍ د افغانستان يو ډېر لرغونی ساز او د زړې زمانی د آرکسترا د آلاتو يو مهم جز دی.

«سورنی، بين او شپېلۍ» درې واړه پوك وهونکې دی چې په اصل کې د لرګي ځخه جوړې شويدی چې بيا وروسته له تانبې او نورو فلزو ځخه هم جوړ سويدی.

---

د هنر پاڼه برخه

ادبيات بهترين هنري موضوع ده او ادبي آثار پر درې ډوله دی:

۱. غزل.
۲. حماسه.
۳. ډرام.

او په هنر کې آزادترين هنر موسيقي ده، ځکه موسيقي کولای شي چې دقيق ترين حالات د زړونو شرح کړی.
«پای»

ډاکټر غیب حسین د آجکل د مجلې د موسیقۍ په ګڼه کې لیکلي دي چې شپېلۍ د نصرالدین طوسي ایجاد دی مګر دا روایت صحیح نه دی ولې چې دغه آله ډېره ارغوني او زړه ده .

شپېلۍ د لفظي او لغوي جوړښت له مخې د پارسي (شیپور) سره نژدې والی لري . که څه هم شیپور د ټروم په معنا دی . زما په خیال شپېلۍ ، شپېلۍ

او شپېلکې او شیپورکې د «ساپـو» یعنې ساړو کلو معنا ورکوي چې پدغه ټولو آلو کې ساه کښته او پورته کیږي شپېل په پښتو کې یوه بله معنا لري

چې سړی په غاښونـو د ساه کښو په کومک د جوارو دوړې یا هډوکي څخه

داني یا غوښه را کاږي نو دې ته هم شپېلۍ وایي ولې چې پدې کې هم د ساه پوکلو او ساه ویلو معنا ورکوي .

په هر صورت مطلب دادی چې شپېلۍ یا تولـه د پښت بخد او بلخ د ښایسته او ښکلي سیمې یو تاریخي ساز

دی چې له دې خاوري څخه لوېدیځ او ختیځ او نور ځایو ته تللي دی او جلا جلا شکلونه او نومونه ئې موندلي دي

د پښتو نخواغرونه ، سیندونه ، درې او ورشوګانې له ځلوروزرو کالو راهیسې د شپېلۍ د خواږه ږغ سره داسې آشنا دي چې هیڅ کله یو له بل سره جلا کېدای نه سي .

د شپېلۍ آواز د شپونکي او چوپان د ټول عمر یو خوږ ملګری او ددې د رمو او ګڼو وزو د ژوندانه ساه ده

# بیتا خوند نه کوي

د سهار وږم ډېر خوږ دی!..
هلته چې مرغان وختي پورته سي..!
هلته چې لمر لومړی وار پر مځکه دغوړیږي..!
وړانګې ئې پر ونو ، میوو او ګلانو ولګیږي..!
او پرخې ځلانده کې..!
دما ښام رانګ هم خوند لري..!
چې بیا نو پسې غلې شپه وي..!
ښایسته سپوږمۍ او د ستورو رڼا ښکاریږي..!
مرغان غلي وي..!
چې نرۍ باران و اوریږي..!
نو د مځکې وږمه دلو نګو بوی ورکوي..!
هو کې؛ دا ټول ښه دي..!
خو یو ددغو څخه هم بېتا خوند نه کوي..!

«ملتن»

آیا پوهیږۍ:-

چې د لمر کره د ډېرو تودو غـازاتو څخه جـوړه شوېده او د لـمر د سطحې تـودوالی د سانتي ګـراډ په حساب پـه اټـکلې تـوګه شپـږ زرو درجـوتـه رسیږي .

څومره چې د شپېلۍ او شپون د کلمو ترمنځ لفظي نژدې-والی موجود دی نو هغومره په وهلو او ږغولو کې هم یو له بله سره تړلي دي .

[ دژوند سندره ]

لیکوونکی : محمد اسماعیل [ زاهل ]

# عشق؛ د صوفیانو او د نړۍ د پوهانو په عقیده!!

د عشق (مینې) له کلمې سره چه څه هم د نړۍ خلک ډېر پخوا زمانو څخه بلد سویدی . شاعران لیکوونکي او عوام خلک ئې ټوله په هر ځای ، و هر وخت کې استعمالوي .
په پخوانی یونان کې عشق یوه الهه د «آفرودیت» پنامه درلوده او په هغو وختو کې په روم کې هم دعشق الهه د «ونوس» پنامه یادېدله او په پای کې عشق په سوزوونکی اور مسمی شو .

مګر سره د هغه هم دعشق کلمه د نړۍ د خلکو په ذهنو کې مختلفې او ډول ډول معناوې لري . د نړۍ لهسترو پوهانو څخه نیولي بیا تر صوفي او عارف پورې هر یو ددې کلمې دپاره جلا او ځان ته عقیده لري یعنې ځینې خلک

عشق پاک ، جاوېدانی او آسمانی بولي . ځوک ئې شهوانی ناپاکه او موقتي ښکاره کوي او ځینې نور په ډېره عادي سترګه ور ته ګوري لکه چې فرانسویان «عشق» یو کمیدي بولي او معمولا خپل د خندا ، ساعتېرې او تفریح دپاره

عاشق (مین) کېږي ، حال دا چې د انګلیسانو په نظر کې عشق یوه «ترا ژیدی» ده او دغه سبب دی چې که د نسل د بقا غریزه نه وای انګلیسانو به هیڅکله واده نه کولای .

په ایټالیه کې عشق ؛ یوه «اوپرا» ده هغه هم یوه نا بایدار اوپرا .

جرمنیان عشق د یوه «ملوډرام» په حیث قبلوی او د اسپانویانو په نظر کې عشق یو «دوئل» دی چې په پای کې نر یا ښځه بریالی کېږي .

دغه ډول عشق د یوه عرب د نظریې له مخې د خوماندینو د زړو دل دی .

اسکاټلینډیان د عشق کلمه «د خپلې ښځې د پلار او مور یا خپل د مېړه د مور و پلار په شتمنی» تعبیروي .

د اسکاندناویا خلک عشق یو ډول لېوتوب شمېري او د هاوائی د خلکو په عقیده عشق یو ډول «نڅا» ده .

دغه ډول د ځینو خلکو په عقیده د عشق (مینې) ډولونه خورا ډېر دي لکه : د پلار او مور عشق له اولاده سره د نارینه مینه له ښځې ، او د ښځې مینه له نارینه سره ؛ د جاه و جلال مینه ، د وطن مینه ، د شتمنۍ مینه ، د مسلک او

مذهب مینه ، د وظیفې مینه او نور داسې چې پېدې ټولو ډولو کې د مور و پلار مینه ډېره سپېڅلې ، مقدسه او لوړه یاده سو پده او له هر ډول چل وول څخه پاکه منلې شوېده

په هر حال هغه خبره چې ډېره ثابته ، مسلمه ، هیڅ شك او تردید پکښې نشته هغه دا ده چې مینه (عشق) موجوده ده او د نړۍ په موجوداتو ډېره اغیزه

لري او د ژوندانه د تحولاتو او تغیراتو سبب ګرځي ، یعنې په هر چا کې د مینې قوه داخله شي د هغه اخلاق کرکتر او د ژوندانه لار له نورو خلکو څخه جلا کېږي .

زه غواړم چې دلته د عشق د کلمې د لغوی معنا تر څرګندولو وروسته د نړۍ د ځینو پوهانو او د اسلام د ځینو

مشهورو صوفیانو او عارفانو عقیدې او نظریې د عشق (مینې په باب و ښاغلو لوستونکو ته وړاندې کړم.

## د عشق د کلمې لغوي معنا

عشق یوه عربي کلمه ده چې د هغې لغوي معنا «په دوستۍ کې تر حد تېر ېدل» راځي. او د عشق په هکله د نړۍ دځینو فلاسفهؤ او اسلامي صوفیانو او عارفانو عقیدې او نظریې په لاندې ډول دي.

«الف» افلاطون.

افلاطون د عشق په هکله داسې عقیده او نظریه څرګندوي:-

«د انسان روح دمخه تردې چې په خپل خاورین چوکاټ (بدن) کې ننوزي، په عالم مجردات کې حقیقي ښکلا او زیبائي پیدا کړې او پر هغه مینه شو ېده، پدې دنیا کې څنګه چې دمجازي ښکلا سره تماس پیدا کوي نو هغه حقیقي ښکلا چې دی په عالم مجردات کې لیدلې او پیدا کړې وه ور په یاد اوي د دنیائي معشوقانو د ښکلا په لومه بندیږي.

څرنګه چې ددې مینې اصل او ریښه پدې دنیا کې نشته او روح وهغه ته نشي ور رسېدلای، نودغه سبب دی چې بېتابي کوي او نارې سورې وهي او د ژوندانه ټولې شپې او ورځې ترخې باندې تېرېږي».

د افلاطون له عقیدې څخه داسې څرګندیږي چې مینه یوه حقیقي او واقعي قوه ده چې سپېڅلې او ابدي حالت لري او مین تر مرګ دمخه ودې ابدیت ته نشي رسېدلای.

✡✡✡

«ب» ډاکتر ریولان.

دی د مینې په هکله داسې وایي:-

«عشق په مطلق ډول وجود نه لري؛ نه خدائي موهبه ده او نه پرټولو مافوقه قوه، پس عشق په واضح او ښکاره معنا وخپل مخالف جنس ته یو میل دی یا په بل عبارت یو میل دی و عمل جنسي ته».

په پای کې دی وایي «عشق داسې دی لکه اشتها؛ په لوږې یا تنده کې یعنې وختې چې تاسې وږی شئ نو غواړئ چې څه وخورئ او ګېډه پړ که کئ. دغه ډول وختې چې عاشق سره دهغې اشتها او لوږې غوندې یو تمایل ستاسې په وجود کې پیدا کیږي او غواړئ چې خپله جنسي غریزه مړه کئ او دغه دجنسي غریزې تمایل ته عشق وایي یعنې که چا وویل زه عاشق یم ګویا په حقیقت کې غواړي چې وو ایي ډېر میل لرم چې خپله معشوقه جسماً تصرف کړم».

ډاکتر ریولان خپل ددې عقیدې او نظریې د ټینګوالي او ثبوت دپاره دیوې ښځې په هکله داسې وایي:-

«یوه ښځه تر هغه وخته پورې ستاسو سره عشق او مینه لري او خپل ځان تاسې ته درسپاري څو چې تر تاسې بل ښه سړی په لاس ور نسي».

دډاکتر ریولان له عقیدې او اظهاراتو څخه داسې څرګندیږي چې مینه یوه شهواني، ناپاکه او ناپایداره قوه ده یعنې دلوږې او تندې په شان یوه موقتي غریزه ده چې د ذیروح دمرګ او نابودېدو سره یو ځای له منځه ځي او پایښت نه لري.

✡✡✡

«ج» ژاك مارسیرو.

دی وایي:-

«عشق یو ډول کشش او جذبه ده چې د انسان په وجود کې په یوه ټاکلي وخت ښکاره کیږي او دهغه وفکر او

خیال ته تغیر ورکوی او په همدغه وخت کی معشوق یا
معشوقه دعاشق په نظر کی دیوه ډېر کامل او ښکلی موجود
حیثیت پیدا کوی پداسی حال کی چی دعاشق دغه ښکلی
او کامله موجود به دنورو په سترګو یو عادی او معمولی
موجود وی » .

ژاك مارسیرو هم عشق دیوې جذبونکی او اغیزه ناکی
قوې په حیث تمثیل او موجودیت ئې ثابتوی مګر نه دهغه
پر ابدیت او موقتی والی څه وایی او نه ئې شهوانیت یا
پاکوالی ته اشاره کوی.

***

« د » صوفیان .

د صوفیانو مسلك و محبت او مینی ته فوق العاده توجه
لری، دمحبت او مینی ژوره اغیزه د نفس په تجلی او
سپېڅلتوب، د رذیله او خبیثه خواصو په ورکېدلو او و
عالی صفاتو ته د رسېدلو په لار کی ډېره مثبته او قاطع
شمېری .

دوی وایی: « د تصوف مسلك عبارت له محبت او مینی
څخه دی » .

دوی دعشق او مینی یوازنی ځای زړه بولی او وایی:
زړه باید له عشق او سوزه ډك وی؛ هغه زړه چی عشق او
سوز نه لری زړه نه دی لکه [آهی چغتائی] چی وایی:

گر با غم عشق سازگار آید دل
بر مرکب آرزو سوار آید دل
گر دل نبود کجا وطن سازد عشق
ور عشق نباشد به چه کار آید دل

صوفیان عقیده لری چی مینه او محبت د روح د
پرورښ او پاکی وسیله او وحقیقت ته د رسېدلو لار ده
دټولو دردونو او علتونو دوا، او د ژوندانه د روند بار
سپکوی، دعشق او مینی په سیمه کی دښمنی او کینه، نفاق
او نفس پرستی، لذت طلبی او هوسبازی.... ټوله
مغلوبه او له مینځه ځی او دهغوی ځای صلح او صفا
ایثار او خدمت ذکر او اطاعت ... نیسی لکه چی مولانا صاحب
رومی پخپل مثنوی کی داسی وایی:

از محبت دردها صافی شود
وز محبت دردها شافی شود
از محبت خارها گل می شود
وز محبت سرکه ها مل می شود
از محبت سجن گلشن می شود
بی محبت روضه گلخن می شود

هو! دصوفیانو له پخپل زړه کی
د «اللهی محبت» دخدای دمحبت صنع
سیل کوی هر وخت ئې « اللهم یا صانع-
کل مصنوع » پرژبه جاری، او دټولو
هستیو اساس او بنسټ محبت و مینه
بولی او وایی:-
« څښتن تعالی [ج] یو پاك ذات وو
چی انسان ئې پیدا کړ خودی و پېژنی او
یو له بله محبت و مینه سره ولری؛ څرنګه
چی آسمانی فرښتی ددې ستر خلعت-
لایقی نه وی نو ئې دا خلعت دانسان په
نامه ختم کړ لکه چی حافظ صاحب
شیرازی وایی:

در ازل پرتو حسنت ز تجلی دم زد
عشق پیدا شد و آتش بهمه عالم زد
جلوهٔ کرد رخت، دید ملك عشق نداشت
عشق آتش شد ازین غیرت و بر آدم زد

دصوفیانو په عقیده، عشق او مینه
یو داسی حالت دی چی هرڅوك
څښتن تعالی [ج] دهغه مستعد وینی
وهغه ته ئې وربخښی؛ د عشق او مینی
جاذبه د عالم په ټولو ذراتو کی
موجوده ګڼی، دخلقت دټولو اسرارو
او رمزونو کلی یوازی محبت بولی
دټولو دردونو دوا یوازی او یوازی
دمحبت په واسطه امکانی شمېری یعنی

عشق ؤمینه یوه خدایی موهبه ، ابدی ؤ بسارز ښته نعمت پاك ؤسپېڅلی حالت، داجتماعی اخلاقو مؤلد او د روح صیقل ګوی او ددغه عشق په واسطه انسانی مقام تر ملکوتی مقام لوړ او ستر بولی .

✿✿✿

«ه» هنری‌واردیچر .

دی وایی:« عشق پدې دنیا کی د ژوندانه سیند دی چی په پای کی په اوقیانوس ګډېږی ، ترڅوچی تاسی ددې‌سیند په څپو اوبا ډاسکو کی ښه‌لاس‌اوپښی وڼه‌وهی دعشق و حقیقت‌ته نشی رسېدلای ».

د هنری‌واردیچر عقیده هم افلاطونی عقیدې ته ورته‌اوعشق ته ابدی رنګ‌ورکوی .

دی د عشق او مینی رود د ژوندانه په سیمه کی نه تماموی اوتر سیمی دباندی‌ئی و یو لوی اوقیانوس‌ته ور تویه‌وی، او دحقیقت دمرغلری دپیداکولو دپاره د لمبووهو نکی و ډېر زیارا وکوښښ ته اشاره کوی .

✿✿✿

« و » شاتوبریان .

دی دعشق په‌هکله داسی عقیده څرګندوی:-
« عشق او ازدواج(واده) د روانشناسی له مخی د دوو نامکملو روحونو اونیمګړو شخصیتو اتحاد او یووالی دی چی یو د بل دتکمیل او بشپړېدو دپاره فعالیت او کوښښ کوی ».

✿✿✿

« ز » اسلامی عرفا .

اسلامی مشهور عرفا سره ددې چی څښتن تعالی[ج] ترهرڅه‌لوړ حتی ترخیال او قیاس، ګمان او وهم‌لاهم لوړ بولی ، برسېره پرهغه هم و څښتن تعالی[ج] ته د

رسېدلولار دسلوك په‌لومړی‌مرحله کی دنفس دپاکی‌او تزکیی په‌واسطه اټکل کوی ، او د سیر په مرحله کی‌و څښتن‌تعالی[ج] ته رسېدل په‌محبت (مینه) پوری تړلی

بولی . یا په‌بل عبارت دوی‌وایی:-
« عشق دخدایی اسرارو اسطرلاب (مباط اصلی اندازې) دی ، هرڅوك چی‌دمینی په‌رمز پوهشی هغه‌وابدی روښنائی تـه رسېدونکی او څښتن‌تعالی [ج] ته وصل کېږی.

پدې‌اساس اسلامی علرفان سره ددې چی خدایتعالی[ج] تر وهم او ګمان، خیال‌او قیاس‌لاهم لوړ بولی بیاهم عقیده‌لری چی‌انسان دمینی او محبت په رڼـا کی کولای شی چی و څښتن تعالی[ج] ته ځان وصل کړی.

داؤ د اسلامی‌عارفانو، صوفیانو اوډنوره دځینو فلاسفه‌ؤ عقیدې چی د عشق اومینی په‌هکله په‌پورته‌ډول ولیکلی‌شوې. اوس به‌دځینو پوهانو اولویو خلکو څو لنډی وینااوی هم د عشق په نسبت و ګرانو لوستونکو ته وړاندی کړم.

۱- ماسیون:« د انسان سرنوشت عشق روښنانه‌اوښکاره‌کوی».
۲- افلاطون:« بېله عشق ژوند محال‌دی».
۳- عشق یوه داسی بـلا ده چی هرڅوك دهغه غوښتونکی دی.
۴- عشق دابدپاره‌پرتولوحاکم دی .
۵- په هغه ځای کی چی دلیل او منطق مغلوبه شی ، عشق مرسته کوی.
۶- عشق دقهرمانانو او لیونیانو پیداکونکی دی.

۲۶مخ‌دی و کتل‌شی

# د خندا !!!

# پلوشې

دمحمد ناصر [ نصرت ]
ژباړه او ټولونه

## خوږوله اشعار

یوشاعر د یو ډېر ممسك حاکم په ستاینه کی قصیده جوړه، اوهغه ته ئې ورولېږله .

حاکم هیڅ شی ور نه کړ .

څوورځې وروسته ئې دغوښتنې یوه قصیده جوړه بیا ئې ورواستوله .

خو دې غوښتنې ئې هم کومه فـایده ونه کړه .

دشاعر حوصله تنګه شوې دحاکم په غندنه کی ئې قصیده لیکلې ورئې لېږله .

حاکم بیاهم بی اعتنا او هیڅ جـواب ئې ورنه کړ .

بله ورځ کله چې حاکم پر آس سپر ېـده وئې لیدل چې هغه شاعر هلته نژدې پر یـوه لوړه ورته ناست دی، نوحاکم ورته وویل چې:

ډېر بی فکره شاعر یې، مدحه دی وکړه څه دی لاس ته ونه رسېده، خواهش دی وکړ قبول نه شو، غندنه دی وکړه اثر ئې ونه ښنده نور نودلته دڅه شی په انتظار کی ولاړ یې؟.

شاعر ورته وویل: ستاد مرګ انتظار کی یم چې ته مړ سې او زه دی دمرګ منظوم تاریخ نوشته کړم .

## د پور دادا کېدو وخت

میرعلی چې د شاهرخ له امراؤ څخه وو تل مدام به ئې محتاجو او فقیرانو خلکو ته په پور پیسی ورکړی، اود پور د ادا کېدو وخت به ئې د شاهرخ تر مرګ وروسته ټاکی .

خلکو دغه قصه تر شاهرخ پوری رسولی اود هغه خیال ئې پر بله اړاوه، تردې اندازې چې یوه ورځ شاهرخ له ډېره درده میرعلی ته وویل :-

ډېر حیرتځای دی چې ته زما په سایه کی ژوندی، او څرنګه چې ماته معلومه شوېده ته زما دمرګ شایق یې!.

میرعلی ورته وویل: چې دغه مطلب مو له کومه ځایه درك کړیدی؟

شاهرخ ورته وویل: ما اورېدلی دی چې ته خلکو ته زما د مرګ په میعاد په پور پیسی ورکوې .

میرعلی ورته وویل: بلی! لکه څنګه چې دی اورېدلی دی همداسی ده ؛ زه و محتاجو خلکو ته پدې میعاد پورونه ورکوم، اوهغوی ددې دپاره چې د پورو میعاد ئې ونه رسېږی

د شپې او ورځې ستاسې د مبارك وجود د عمر اوسلامتۍ ددوام دپاره دعاوې کوی اوستاسې بقا له پاك خدای [ج] څخه غواړی.

د میرعلی پدې جواب سره شاهرخ خورا خوشحاله سوی، د هغه پر دوستی او مقام باندی ئې زیاتوب کړی، بدبینی ئې په ښه ښه خوش بینی سره بدله شوه.

✡●✡

# د دوږخ دعا

سوالګر . خدای تعالی دی ستا او ستا د خانمی جنت په نصیب کړی ، یوه روپۍ خو راکړه.

د کورخاوند . دغه دوې روپۍ واخله او دعا راته وکړه چې خدایتعالی می خانمه جنت ته واچوی او ما دوږخ ته.

ځکه هلته خو به ئې لږ ؤ ډېر له شره په امان یم.

✡●✡

# د سګرېټو بیه

دوه کسه په صحبت سره اخته، یوه و بل ته وویل :-

دا شلم کال دی چې سګرېټ څکوې ،که موږ دورځی شل دانی شمار، او بیه ئې یو فرانك ونیسو دمیاشتی ۳۰ ، دکاله ۳۶۰ او په شل کاله کی ۷۲۰۰ فرانکه کیږی، داهغه مبلغ دی چې پدې شل کاله کی دی عبث دود او تلف کړیدی که دی سګرېټ نه څکولای، اوس دی تر ښار دباندی د ښو اوبو ، صافی هوا ، د استراحت لوی ځای را نیولای سوای.

ملګری ئې ورته وویل: ته صحیح وایې ، آیا ته هم سګرېټ څکوې؟

هغه ورته وویل: یـه .

نو سګرېټ څکونکی ورته وویل: خواهش کوم چې یوه ورغ می ستاسې هغه ځای ته چې د پورته صفت لرونکی وی دروغواړې .

✡●✡

# دوه غټ دروا غجنان

یو نفر وویل چې زه په سترګو کی دومره تېز او قوی یم، چې زرګامه لیری ډېر واړه واړه شیان راته ښکاری: دمثال په توګه همدا اوس د کلیسا پر ګلدانۍ مچ رهسی او زه ئې ښه وینم .

بل نفر وریسی ور درسته کړه ، چې زما سترګی خو دومره نه دی . لېکن غوږونه می خورا تېز او د اروېدو زیات قدرت لری.

دمثال په توګه هغه مچ چې هلته رهی دی دلته ئې زه د پښو کړ پی اروم .

# عشق ....

د ۲۴ مخ پاته

۰۷ روسو :« بی مینی خلګ هغه ډانده دی چې هیڅکله به منزل ته ونه رسیږی».

۰۸ وال پول :« مینه یوه داسی ناروغی چې دهغه علاج مرګ دی ».

۰۹ بورك :« مینه یوه عالیترینه نشه اویوه ظالمترینه قوه ده ».

۰۱۰ ماسیون :« مینه یوازنۍ قوه ده چې درانه بارونه سپکوی او د ډېرو ستړو پښو دپاره کړپ وږپ لاری سموی».

۰۱۱ ناپلیون:« دانسان په زړه کی د مینی داسی ده لکه د آس و بغل ته مهمېزه ».

«پای»

# خرڅونکې نجلۍ

یوه نجلۍ چې فقط په همدې نامه پېژندل کېده د شپې زیاتره وخت به هغه هوټل ته چې د پاریس د مشهور بازار د محصلینو په کوڅه کې و له ګلانو ډکې ټوکرۍ سره راتله، موږ هر یوه به د هغې د زړه د خوښۍ د پاره څو، څو ایکې ور کړې یو یا دوه ګله به مو ځینې رانیول. په دغه وخت کې به د نجلۍ په شیرینو شونډانو کې یو نری تبسم ښکاره او زموږ توجه به ئې جلب کړه.

په دغه وخت کې د نجلۍ سن لا شلو کالو ته نه رسېده خو د هغې غټو او تورو سترګو دا ښکاروله چې د عربو له نژاد څخه ده. ناز او اداء ئې ښکلا او محبوبیت دوه چنده کړی و. دغې نجلۍ ډېر زړه وړونکی او فدایان درلوده خو طبعاً به ئې هر کله د خلکو د اظهاراتو له قبول څخه اوږه خالي کړې او همدا سبب و چې د نجلۍ شهرت خورا زیات شوی تقوی او پاکۍ ئې قدر او قیمت زیات کړی و.

کله، کله به ځینو هوا پرستانو خاص بیا هغه وخت چې د شرابو بخار به ئې په سر کې، او اعصاب به ئې په ښور کې وه ډېرې پیسې او غټ لوټونه په مخ کې ور ته اچول. مګر هغې به هیڅ اعتناء ونه کړه خپله ټوکرۍ به ئې پورته خدای په امانی به ئې کړی بل ځای ته به ولاړه.

یوه شپه خپل کورته چې په یوه تیاره او تنګه کوڅه کې و تله، پر لاری ئې یو کوچنی هلک چې نوی پیدا سوی او په عامه لار کې پروت و راخیستی، له ځانه سره ئې خپل هغه اطاق ته چې پورته واقع و یووړ. د څراغ په رڼا ئې ولیدل چې د هلکی پر اوږې باندې په سنجاق یو کاغذ ځوړند، او پکښې لیکلي وه چې:

ددې هلک پر حال باندې چې مور ئې د مرګ پر حال او د ژوند هیڅ امید ورته نشته رحم وکړئ.

دغه واقعه چې د هغې ګل خرڅونکې نجلۍ د باطنی احساساتو، قلبی آرزوګانو د میل او ارادې سره ئې مطابق وه هلک ئې په زړه توب قبول او په ساتلو کې ئې کوښښ کاوه، او که به کوم وخت دا نه وه یوې همسایه ښځې به پر هلک پام کاوه.

له دغې مقدمې څخه دوه کاله تېر شوی او ګل خرڅونکې ښځې پدغه دوه کاله کې بې له دې درو کارو څخه چې پر هلک پام کول ګلان خرڅول او خپل عفت او عصمت ئې په انتها درجه ټینګ ساته بل کار نه کاوه.

پدې وخت کې ګل خرڅونکې ډېره خوښه او ځان ئې خورا نېکمرغه باله، ځکه د هغه هلکی په نسبت ددې زړه د مورولۍ له یوډول محبت څخه ډک او خاطر آرامه وه. لېکن ځرنګه چې زمانه

د ژوند هیڅ ترتیب پر یوه حال نه پرېږدی. هلك ډېر نـاروغه سوی، د مرګ زړه ربړدونکی منظرې په هغه تنګك او تیاره اطاق کی خپله هولناکه چهره ښکاره کړه.

ګـل‌خرڅـونکی ښځی هغه نـاروغ هلکی شفاخـانی ته نه بېوی‌ه بلکی د شپې او ورځی بـه په‌خپل کورکی د هغه په علاج مشغوله او دومره زیات کوښښ ئی کاوه چی ټوله ذخیره پیسی ئی‌د خپل‌زړه د پیوند هلکی په علاج کی تمامی سوی، او آخـر خبره دې ته ورسېده چی یوه پیسه‌ئی هم نه‌درلوده،

یووخت تقریباً نیمه شپه وه چی‌د یوې خوا ډېر یخ او د بلی خوا اطاق‌هم تیاره ؤ د څراغ تېل، سکاره او نور شیان هم پرمخ تمام سوی‌وه، ډېر پرېشا نه سوې، د خپـل عفت او عصمت ساتلو سره‌ئی په زړه کی ډېری خبری ورګرزېـدلی، آخر ئی تصمیم‌ونیاوه، له‌اطاقه راووتلی لاندی ئی د محصلینو پرکوڅه مخ‌نیولی یولوی هوټل ته‌ورغله هلته یو مېز ته چی څو کسه شاؤخوا پر را ګرزېدلی ناست وه ودرېد.

هغه‌خلګك چی ځینی سپین‌بږیری، ځوانان اوهم‌هغه کسان وه چی ګل‌خرڅونکی ښځه به ئی زیاتره تعقیب اوهم ددې د لیدو ډېر مشتاقان وه.

ګل‌خرڅونکی ښځی مخ ور ګـرزولـی، او ورتـه ویی‌ویل:

زوی‌می ډېر ناروغه، د علاج‌دپاره هیڅ‌شی اوپیسه هم‌نه‌لرم، حاضره یم‌هریو چی‌وغواړی ما دیوه‌ساعت دپاره خپل کورته‌بوزی‌اؤ څه‌پیسی راکړی.

لـه خلګو څخه یـوه وویل:

زه لس‌فرانکه، بل‌ویل زه پنځلس، دریم ویل زه شل فرانکه درکوم. آخر یوبل‌نفر دټولو خوله‌تړلی او ویی‌ویل:

زه پنځوس فرانکه در کوم.

پدې‌وخت کی ښه ګړی سکوت موجود، او نزدې‌ؤ چی‌ګل‌خرڅونکی نجلۍ له ۵۰ فرانك ورکونکی سړی سره راضی او ولاړه سی. لېکن یو شرقی‌محصل چی د هغی ډلی په‌منځ کی ناست‌ؤ سکوت‌ئی مات‌اوویی‌ویل:

زه سل‌فرانکه درکوم.

پدې‌وخت کی یونفرهم پیدا نه‌شو چی‌زیاتوب دی وکړی.

ګل‌خرڅونکی نجلۍ‌له نورو خلګوسره خدای په‌امانی کړې له هوټله راووتل. کله‌چی‌دوی پرلاری سره رهی، اود نجلکۍ کورته نـژدې سوی‌وه نجلۍ‌و هغه‌شرقی محصل‌ته وویل:

اجازه راکوې چی لـه دغه سکاره خرڅـونکی څخه یـوه کـڅوړه سکــاره رانیسم او کورته سر ورننباسم بیا به‌بېرته سره ولاړسو؟

سړی ورته‌وویل: ډېرښه.

وروسته دواړه د سکاره‌والا دکان‌ته وروختل.

نجلۍ سکاره خرڅونکی ته وویل‌چی: ته یوه‌بوری سکاره زموږکره ولېږه پیسی به‌ئی‌سبا سهار درکړم او چی لـه دکانه راووتل او کور ته نژدې شوه هغه‌سړی ته ئی‌وویل:

تاسی به دلته په دغه کوڅه کی یو قدم ووهۍ، زه به دوې دقیقی وروسته راسم.

کله‌چی کورته ورسېده ویی لیدل‌چی همسایه‌ښځی‌ئی دآخری ځل دپاره د سکرو ګـونی ټك وهلی اوچی پاته ایـره ئی په بخاری‌کی واچوله، ویی‌ویل: چی‌نور‌نو نشته.

ګل‌خرڅونکی نجلۍ ورتـه وویل: اوس به یـوه بوریه سکاره درته راسی هم به خپل

نور د بشتی به‌دریم مخ کی

# ګل خرڅونکی...

اطاق او هم به زما اطاق را تودکړې . چې دایې وویل نو پورته ختلی ، د هلك بسترته نژدې ورغله

هلك چې بیده ؤ کرار ئې مچ کړی او یو سوړ آه ئې

وکیښ . وروسته له اطاقه راوتلی لاندی کښته شوه که ئې کتل په کوڅه کی

سړی نشته او تللی دی . په دغه وخت کی نجلۍ هکه-پکه‌دریدلی نه پوهیده چې څه وکړی.

همسایه ئې له اطاقه ورته راوتلی او ورته ویې ویل چې:

هغه سړی چې ستا سره دلته‌راغلی ؤ دغه پاکټ ئې

راکړی‌او راته‌ویې‌ویل‌چې دغه پاکټ ورکړه او دی ولاړ، انتظارمه‌باسه.

ګل خرڅونکی نجلۍ چې پاکټ خلاص کړ وئې لیدل چې د پاکټ په منځ

د «سلوفرانکو‌پنځه‌لوټه» پراته دی.

د م.[نیازی] ژباړه

---

د دوهم مخ باته برخه

چاری مو پوره کیږی او یو داسی تحول منځ ته راځی چې هر فرد د خپل شخصیت واقعی حیثیت

پیداکوی‌اود ټولنی ټولی نیمګړتیاوی پوره کیږی صادق، صادق وبولو او خاین،خاین‌وبولو. هیواد هیواد وبولو . خدمت

خدمت وبولو او دا وطن خپل د ژوند او مرګ ټاټوبی وګڼو او د ارتقاء او د ټولنی حیثیت پرځای کړو اوبس.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI 'BARAK'

(NOVEMBER) 1968

GOVERNMENT PRESS

د امتیاز خاوند: دطلوع افغان نشراتی مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

تاریخی، اجتماعی، علمی، ادبی

اداره: دشهیدانو واټ

دتاسیس کال ۱۳۳۹

د ۹ کال اتمه ګڼه

۱۳۴۷

کالنی بیه

په کندهار کی [۳۸] افغانی

دهیواد په داخل کی [۳۳]«

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

پر له پسی ګڼه ۹۸

دکندهار دولتی مطبعه